BALANA

# شاه امان الله

## یو سړی؛ څو څېرې



داد محمد ناوک

یو وخت کې تاریخ یوازې د تېرو خلکو د معلوماتو موندل او پر خپلو فخر کول، ښېګړې یې بیانول او د نورو د ټیټ معرفي کولو لپاره کافي ګڼل کېده، که څه هم تاریخپوهانو او لیکوالو به بېل نظر درلود، خو عام تصور دغسې و، چې موږ هیڅ نیمګړتیا نه لرو، موږ چې هر څه کړي ښه مو کړي؛ ځینې استدلال کوي چې په تاریخ کې د هر مغلوب ملت لپاره غالب ملت قاتل، جنایت کار او ظالم تصورېږي او غالب ملت خپل ځان فاتح، سرلوړی او عادل معرفي کوي، خو دا «تاریخي مقوله» هر ځای صدق نه ورکوي، هر ځای څه چې ډېر ځایه یې نه ورکوي، موږ که په اسلامي تاریخ کې د اسلامي لښکرو غزاګانې وګورو، نو هغه سیمې چې اوس پکې اسلام خپور دی، مني چې نیکونو یې تېروتنه کوله چې د دې عظیمو انسانانو پر وړاندې یې مقاومت کاوه؛ دغه نړدې هند ته که د اعلیحضرت غازي احمد شاه بابا رحمه الله او یا تر هغه وړاندې د اعلیحضرت سلطان محمود غزنوی رحمه الله یا هم له عربي نړۍ د راغلي ځوان محمد بن قاسم رحمه الله په اړه د دوی د خپلو تاریخوالو نظریات ولولو، مخالفین هم لري، خو ډېری یې مني چې دا خلک سره له دې چې جګړې ته راغلي و، وینې توی شوې، له دواړو خواو تلفات وشول، خو «دیوتاګان» و.

همدې غزواتو په موږ کې دا روحیه پیاوړې کړه، چې نور نو خپلې معاصرې تاریخي څېرې هم د تقدس تر بریده لوړې کړو او اصلاً باید نیوکه پرې ونه شي، چې له همدې امله که په معاصر تاریخ کې پر چا نقد کېږي لوستونکی کله کله و انګېري چې لیکوال زیاتی کړی، خو تاریخ د همدې لپاره دی چې د خپلو تېرو له نیمګړتیاوو عبرت واخلو، ښېګړې که یې په اوس وخت کې په درد خوړل کېږي ګټه ترې واخلو؛ د دې تر څنګ د تاریخ هره شېبه زموږ د اوسني هویت خښتې دي، چې باید وساتل شي، دا که ښې دي که بدې، خو زموږ دي.

په اوس وخت کې له همداسې جنجالي تاریخي څېرو نه یوه هم شاه امان الله دی، هغه چې د امیر حبیب الله خان درېیم زوی و، د ۱۹۸۲م کال د شپږمې میاشتې په لومړۍ ورځ وزېږېد، په ۱۹۱۹م کال واک ته ورسید، سمدستې یې د خپلواکۍ اعلان وکړ او د علمي، روحاني او جهادي څېرو په مټ یې د همدې کال په اوړدو کې د هېواد خپلواکي تر لاسه کړه، شاه امان الله په ۱۹۲۹م کې له هېواده و ووت، د ۱۹۶۰م کال د اپریل په شپږویشتمه په سویس کې د جلا وطنۍ پر مهال وفات او جسد یې جلال اباد کې د خپل پلار تر څنګ خاورو ته وسپارل شو.

د امیر حبیب الله د واکمنۍ او امان الله خان د ځوانۍ پر مهال لومړۍ نړیواله جګړه ونښته (۱۹۱۴جولای ۲۸- ۱۹۱۸جنوري ۱۱) چې امیر پکې د بې طرفۍ اعلان وکړ، دې

جګړه کې له يوې خوا د متحدينو په نوم المان، اتريش، هنګري، ترکيه او بلغاريه او له بله اړخه د متفقينو په نوم برتانيا، فرانسه، روسيه، اټاليا، امريکا، جاپان، رومانيه، سربستان، بلژيک، يونان او پرتګال و. په دې وخت کې انګريز پرلپسې فشار وارداوه، چې بايد امير بې طرفه پاتې شي او يو څه ډاډه هم و، چې هغه د دوی پر وړاندې د درېدو جرئت نه‌شي کولی، خو ضمناً پر امير د عثماني خلافت له لوري، د الماني راغلي هئت له لوري او په هند کې د مسلمانو علماوو له لوري، په تېره بيا شيخ الهند علامه محمود الحسن رحمه الله هم خپل وتلی طالب مولانا عبيدالله سندهی رحمه الله امير ته را ولېږه، چې د انګريز پښه عجب ځای بنده شوې، دلته موږ تيار يو، له دغې خوا تاسې د جهاد غږ پورته کړئ، خو د دې ټولو فشارونو په منځ کې امير ځان بې طرفه وساته، خو د درباريانو تر منځ زوروور درز پيدا شو، يوې ډلې همدا بې طرفي تاييدوله خو بله ډله چې د امير حبيب الله غبرګ زامن امان الله او عنايت الله، ورور يې نصر الله، محمد نادرخان او محمود طرزي هم پکې و، د نوموړي د دې پرېکړې مخالفت کاوه، دربار کې دې ډلې ورو ورو رېښې وځغلولې او د «حزب سری دربار» په نوم يې ډله رامنځته کړه چې پټ فعاليتونه يې کول او مشري يې هم د نصرالله خان پر غاړه وه، خو امان الله خان يې چارې ډېرې سمبالولې او د امير حبيب الله خان د ځارګرو سترګې هم په ده پسې وې.

**ايا امان الله خان د خپل پلار په وژنه کې شريک دی؟**

د ګڼو نورو عواملو تر څنګ د برتانوي هند پر وړاندې له جګړې سرغړونه د حبيب الله خان او د هغه د مخالفينو تر منځ يو بل درز هم شو، له همدې امله کله چې په ۱۹۱۹م په ژمي کې امير حبيب الله خان جلال اباد ته لاړ، د چکر لپاره د لغمان کله ګوش ته راغی، د فبروري په ۲۱مه شپه پخپله خېمه کې په مرموز ډول ووژل شو، خو تاريخ‌ليکوال يې د پړې ګوته همدې «حزب سری دربار» ته نيسي، مير غلام محمد غبار په «افغانستان در مسير تاريخ» کې ليکي:

»د ۱۳۷۳ق کال د جمادی الاول ۱۸مه او د ۱۹۱۹م کال د فبروري ۲۱مه د پنجشنبې شپه وه، د شپې درې بجې يو وسله‌وال سړی چې ښايي مرستندوی به هم ورسره و، د خيمې يوه خوا پورته وکړه تېز لويې خېمې ته ور ننوت، په داسې حال کې چې شاه ارام او غلی ويده و. سړي په ډاډه زړه د توپانچې خوله د امير له چپ غوږ سره کېښوله، ډز يې وکړ او په چټکۍ له کومې لارې چې راغلی و، بېرته لاړ«. مرحوم غبار د امير حبيب الله له وژل کېدو وروسته د نصر الله خان خون‌سردي ته ګوته نيسي، چې د ځان لپاره بعيتونه غواړي او ډاډه برېښي او کله چې نصر الله خان کابل ته پلاوی لېږي چې د خپلې پاچاهۍ خبر ورکړي، نو مشري يې شجاع الدوله ته سپاري او دا سړی د دوی د «حزب سری دربار» غړی و، نو مرحوم غبار ښکاره ليکي: «دا هماغه شخص دی چې ويل کېږي د حزب سری دربار غړی او د عين الدوله [امان الله] همکار او د امير حبيب الله خان قاتل دی«.

کاندید اکاډمیسن مرحوم عطایي تر دې هم وضاحت کوي او د «حزب سری دربار» اړوند زیاتوي:

»دوی فیصله وکړه چې کله امیر ژمني تفریح‌ځای جلال اباد ته ولاړ شي هلته به وژل کېږي، دغه فیصله د قرآن مجید پر پاڼه ولیکل شوه او ټولو لاسلیک کړه او دغه قرآن مجید یې سردار نصر الله خان ته ورکړ، چې د امیر تر مرګ وروسته به دی پاچا وي«.

لکه وړاندې چې یاده شوه، د امیر د وژل کېدو پلان د «حزب سری دربار» له لوري نیول شوی و، چې پخپله د امیر زامن امان الله او عنایت الله، د هغه ورور نصرالله، محمود طرزي او جنرال محمد نادرخان هم پکې شامل و، خو د دقیق قاتل په اړه یادېږي چې هماغه شجاع الدوله غوربندی دی چې تر ټولو ډېره مرسته ورسره امان الله او د هغه مور کوله.

**مرحوم عطایي لیکي:**
»دوی [حزب سری دربار] میرزا محمد حسین خان مستوفی الممالک چې د امیر د استخباراتو کار یې هم کاوه تعقیبول، خو څه یې لاس ته نه ورتلل. بیا یې هم امیر و دې ته متوجه کاوه چې د خطر ټکی امان الله دی! په دې ډله کې چې د امان الله خان په قومنده یې کار کاوه [که څه هم مشري یې د نصرالله خان په غاړه وه] ډېر کاري سړی شجاع الدوله خان و چې وایي د امان الله خان مور زوی ورته وایه، کومه تفنګچه چې امیر پرې ووژل شو، هم علیا حضرتې هغه ته ورکړې وه«.

دا چې د شاه امان الله شخصیت رښتیا هم دې ته جوړ و، چې د پلار مرګ ته هم تیار شي؟ هغه پوښتنه ده چې د نوموړي واکمني او خصوصاً له بهرني سفر وروسته یې د نوموړي فعالیتونه، د هغه د مور چلند، له ماماخېلو سره اړیکي او زموږ د سدوزویو او محمد زویو لړ وړاندې دوره یې ځوابولی شي، که څه هم په شفاهي روایاتو کې راځي چې شاه امان الله دومره نرم زړی هم و چې د غزني په جګړه کې یې د خپل عسکر د توپ په ډز کې د حبیب الله کلکاني د پلویانو په وینو لړلي جسدونه ولیدل، نو ویې ویل: تر داسې پاچاهي تېر یم او مخ پر هند روان شو! خو د دې تر څنګ نوموړي ډېر هغه روحانیون هم د اعدام پر پړي را وځړول چې لومړی یې د انګریز پر وړاندې د دوی د سپر شویو سینو پر مټ خپلواکي واخیستله خو وروسته چې یې د نوموړي له «اصلاحاتو» سره توافق رانه غی په دار وځړول شول، لکه قاضي عبدالرحمن پغمانی چې د نوموړي قاضی القضات و، خو له بهرني سفر وروسته یې له حرکاتو سر جوړ را نه غی او اعدام یې کړ، خو د پیر صاحبانو د کورنۍ چې پخپله یې شاه امان الله ته د پاچاهۍ تاج پر سر ور ایښی او نوموړي حضرت صاحب فضل عمر مجددي رحمه الله ته «نورالمشایخ» لقب او

په شکر دره کې پنځه زره جریبه ځمکه ورکړه، خو له مخالفت وروسته یې پخپله نور المشایخ صاحب تبعید او حضرت صاحب محمد صادق مجددي او د هغه وراره حضرت صاحب محمد معصوم مجددي یې زندانیان کړل.

د نوموړي د همدې کار کردګۍ په تړاو؛ کله چې په پکتیا کې د نوموړي د «اصلاحاتو» پر ضد ملا عبدالله د مخالفت توغ پورته کړ (۱۳۰۲،۱۲،۲۱ش)، نو له لنډې جګړې وروسته یې ملا عبدالله، ملا عبدالرشید، ملا عبدالسبحان، ملا عبدالحلیم، ملا نور احمد او ۳۶ تنه نور ژوندي ونیول او ټول یې په دار کړل ، په همدې تړاو عبدالهادی داوی ورته په ګیله من انداز وویل: ښه به دا وه چې د محکمې امر دې پرې اخیستی وای، «امان الله په تمسخر ځواب ورکړ: ایا ته خبر نه یې، زه د امیر عبدالرحمن خان لمسی هم یم«.

میر محمد صدیق فرهنګ پخپل مشهور اثر «افغانستان در پنج قرن اخر» کې د ګڼو بهرنیو او کورنیو سرچینو له سپړلو وروسته لیکي: «په قوي احتمال سره ویلی شو، چې د امیر وژنه د دربار په توطیه او د دې توطیه ګرو له ډلې یو تن ترسره کړې ده، چې طرح کوونکی یې غالباً امان الله خان او د هغه مور علیا حضرته او اجرا کوونکی یې شجاع الدوله و«.

**د شاه امان الله واکمني**

شاه امان الله په ۲۷کلنۍ ۱۹۱۹م کال کې واک ته ورسید، د نوموړي بریا په دې کې وه، چې ټوله ورسره ډله د انګریز د استعمار ضد او د دې تر څنګ له واک ته رسېدو سره سم، د برتانیا سفیر ته مخامخ د خپلواکۍ د اعلان او نغدې خبرې هغه څه و، چې امیر یې له ولس سره وتاړه، ځکه خو نصرالله خان هم په جلال اباد کې تر واک تېر او د پاچاهۍ خوبونه یې شاته ټېل وهل؛ امیر ته د پاچاهۍ تاج حضرت صاحب نورالمشایخ رحمه الله ور پر سر کړ او دا چې د انګریزانو پر ضد یې د جهاد نیت وښود، نو د هېواد په لرو بر کې یې غږ ته لبیک وویل شو.

شاه د څو میاشتو په د ننه کې د الله جل جلاله په مرسته او د ولس په پراخ ملاتړ د انګریز امپراتوري د افغانستان خپلواکۍ منلو ته اړ ایستله؛ نو یې پښې لا کلکې او په ولس کې یې رېښې لا پخې شوې. شاه اغا صدیق مجددي چې کورنۍ یې د شاه امان الله د واکمنۍ په پیل کې د امیر ملاتړې، خو وروسته یې زندانونه، تبعیدونه او ان مسلح ټکر سره راغلی، پخپل کتاب «امیر حبیب الله خادم دین رسول الله» کې مني چې د امیر د واکمنۍ پیل خورا بریالی و:

»د خپلواکۍ له جګړې او د بخارا له مسلمانانو سره له همکارۍ وروسته امان الله خان د ملت له پوره باوره برخه‌من شو او خلکو د هغه له پروګرامونو چې ملت یې

د نوي ژوند په لوري رهنمايي کوي سخت خوندور هرکلی وکړ. د هغه عالي برنامو شهزاده او شهزاده بازي او د محمد زيو مفت خورو کورنيو ته نسبي معاشونه له منځه يووړل. مينځېتوب او غلامي يې ختمه کړه، غير انساني جزاوې لکه د مجرمې ښځې وېښتان د اس په لکۍ پورې تړل او په کجاوه کې د مجرم سړي کېنول او له لوړي ځوکې ښکته را رغړول يا هم د توپ خولې ته تړل يې له منځه يووړل«.

د شاه امان الله له لوري د خپلواکۍ د اعلان په تړاو په کابل کې د برتانوي هند استازي د هماغه کال په اپريل مياشت کې خپل حکومت ته وليکل: «نوي امير د ۱۹۱۹ د اپريل په ۱۳مه په دربار کې داسې اعلان وکړ: «زه ځان او خپل هېواد له داخلي او خارجي لحاظه کاملاً ا زاد او خپلواک اعلانوم، تر دې وروسته به زما مملکت لکه د نړۍ نور ممالک او قدرتونه ازاد وي. هيڅ يوه خارجي قدرت ته به د سر د يو ويښته په اندازه اجازه ور نه کړم چې د افغانستان په داخلي او خارجي چارو کې مداخله وکړي او که دغسې اقدام وکړي سره به يې په همدې توره ور غوڅ کړم! وروسته امان الله خان په دغه مجلس کې د انګريز نماينده ته اشاره وکړه او ويې ويل: ته پوه شوې؟ ما وويل: هو زه پوه شوم«!

دې ازادۍ په سيمه کې نوې روحيه را پيدا کړه په تېره بيا د هند د مسلمانانو ضميرونه يې په حرکت را وستل، ځکه خو علامه اقبال لاهوري رحمه الله هم ورته وفرمايل:

ای امير کامگار ای شهريار
نوجوان و مثل پيران پخته کار
جان تو بر محنت پيهم صبور
کوش در تهذيب افغان غيور

**د شاه بله څېره!**

شاه امان الله سره له دې چې په کور د ننه مخالفتونه هم لرل، لا هم پر ډېرو کسانو پوخ باوري نه و، که څه هم د پلار د قتل په تور يې يو تن ساتونکی اعدام هم کړ، خو لا هم دا غوغا غلې نه وه، مګر بيا هم په دومره لوی جرئت د انګريزانو د پراخې امپراتورۍ پر وړاندې د امير د محکم غږ علت څه و؟ ډېری تاريخپوهان پر دې باور دي چې امير له ځان سره د روحانيونو ملګرتيا درلوده او د پلار د امارت پر وخت يې د انګريزانو پر خلاف د مسلح ټکر دريځ په ولس کې مشهور شوی و، چې شاه امان الله هم همدا موقع مناسبه وبلله او پوهېده چې د ولس نبض دې ته برابر دی چې که په هند يې ور مرش کړي، شاتګ به ونه مني.

امير په شخصي لحاظ په دربار کې ساتل شوی ځوان و، د مور يې له پلار سره ډېره جوړه نه وه، ځکه خو هغې هم هڅه کوله چې د خپلې پلارګنۍ «بارکزيو څخه» په

دربار کې رسوخ زیات کړي چې په ګڼو تاریخي اثارو کې یې اسناد هم موندل کېږي، خو د دې تر څنګ امیر د ولس له عمومي روحیې پوره خبر نه و، هغه تر دې اندازې په سیاسي چارو کې هم محصور ساتل شوی و، چې ګڼ مهم کارونه یې د مور له مشورې پرته نه شوای ترسره کولی، کاندید اکاډمیسن محمد ابراهیم عطایي یې د نورو ځانګړنو په اوړدو کې لیکي چې نوموړي رواني کمزوري هم درلوده:

»امان الله خان یو افراطي وطندوست او په ټاکلي حد کې سخت نشنلیسټ و، خو شهزاده و، د عبدالرحمن خان او حبیب الله خان وینه یې په رګو کې وه او له دغه درکه سخ خودخواه، مستبدالرایه او په عین زمان کې په یوه خاصه رواني کمزورۍ هم اخته و«.

شاه امان الله له خپلو ملګرو سره په «حزب سری دربار» کې لا د «اصلاحاتو» په اړه بحثونه درلودل او اوس چې واک لاس ته ورغی، نو د خپلواکۍ تر اعلان وروسته یې «امان افغان» اخبار د عبدالهادي داوي په مشرۍ د سراج الاخبار پر ځای را ویوست چې دا یې په فرهنګي برخه کې د «اصلاحاتو» لومړی ګام ګاڼه.

شاه امان الله د واک په څلورم کال ۱۹۲۳ز کې جلال اباد کې نږدې نهه سوه تنه کسان را ټول او په دې جرګه کې یې د هېواد لومړنی اساسي قانون تصویب کړ، خو کال وروسته ۱۹۲۴ز امان الله خان په پغمان کې دې ته اړ شو چې د خپلو «اصلاحاتو» ګڼې مادې بېرته ور واخلي، چې دې چارې د نوموړي درباري او له درباره د باندې مخالفینو ته لا زړه ورکړ، چې په پایله کې یې ان واکمني له ګوتو ووته.

**یو اوږد سفر او د شاه یوه نادره څېره!**

شاه امان الله چې د ۱۹۲۶ز کال په جون کې له «امیر» نه په «شاه» امان الله بدل شو، کال وروسته ۱۹۲۷ز د ډسمبر په ۱۵مه یې د یو پلاوي په ملتیا د اوږد سفر ملا وتړله چې د ۱۹۲۸ز کال تر جولای پورې اوږد شو، د دې سفر د پلاوي په اړه کاندید اکاډمیسن محمد اعظم سیستانی لیکي:

»شاه امان الله د ۱۹۲۷کال د ډسمبر په ۱۵مه له ۳۱ کسیز پلاوي سره د کندهار له لارې هند ته ننوت، ملکه ثریا لومړنۍ افغان ملکه وه چې بهرنی سفر یې وکړ، زوی یې رحمت الله شیرې کلن و، چې درملنې ته یې اړتیا درلوده... دوه وروڼه یې عبدلوهاب طرزي او عبدالتواب طرزي، د ملکې مرستندویان او نور کسان له: والي علي احمد خان (چې شاه له ده پرته په کابل د هغه پاتې کېدل تاواني ګڼل)، د دربار وزیر محمد یعقوب خان شاغاسي، د دولت د شورا رییس سردار شیر احمد

خان، سردار محمد حسن خان، د حربیه وزارت معین حبیب الله خان، د هرات د عسکري قومندانۍ فرقه مشر عبدالرحمن، د بهرنیو چارو وزارت د اسلامي هېواد ونو د څانګې مدیر غلام یحی خان طرزي، په بهرنیو چارو وزارت کې د شفر اداري مدیر محمد امین خان دروازی، د بهرنیو چارو وزارت وکیل غلام صدیق خان چرخي...» د دې تر څنګ څو تنه ژباړونکي او د پلاوي نور غړي هم ورسره ملګري و.

شاه امان الله پخپله د دې سفر اړوند یونلیک کې د سفر هدف نورې نړۍ ته د خپل هېواد ور وپېژندل، له هغوی سره اړیکي جوړول او له هغوی نه د څه اخیستل یادوي، خو دا چې د هېواد وضعیت ته په کتو د دومره مهمو چارواکو په تېره بیا پخپله د شاه سفر مهم و؟ کاندید اکاډمیسن محمد ابراهیم عطایي لیکي: «ظاهراً خو دا ستر توپاني کار ښه جلوه درلوده، ولې بې وخته و، خاصتاً دا چې بیا په دغه مسلط بحران کې دې سفر شپږ میاشتې ونیولې... دا خبره البته بې ځایه نه ده چې دغه سفر هم لکه د ځینې نور کارونه د امان الله خان له بوالهوسۍ څخه منبع درلوده«.

شاه، په دې اوږده سفر کې هند، مصر، ایټالیا، فرانسې، بلجیم، المان، انګلستان، شوروي، ترکیې او ایران ته لاړ، چې بېرته د هرات له لارې هېواد ته راغی؛ پخپله شاه په هر هېواد کې له هرکلي خوښي ښوودلې او دا سفر یې د ځان او هېواد لپاره ډېر ګټور بللی، کاندید اکاډمیسن محمد اعظم سیستاني د امان الله خان د سفرنامې په حواله لیکي:

»خریداری هایی که در این سفر کرد ام ازین قرار است:

1.پنجاه و سه هزار و پنجصد تفنګ جاغوردار، رقم انګلیسی

2.یکصد و شش توپ

3.شش میترالیوز

4.هشت طیاره

5.پنج موتر زره پوش

6.ده هزار کلاه زره پوش

7.فاریکه پارچه های پشمی ونخی

8.فابریکه قندسازی

9.فابریکه دکمه سازی

10.ماشین پشم شوئی

11.ماشین ساخت مواد کیمیاوی

12.فاریکه جاکت بافی

13.بیست و چهار پایه مشاین جراب بافی

14.ماشین های حساب

15.ماشین های شیر و مسکه

16.مشاین های حفظ میوه

17.مشاین های تیل کشی

18.هجده عدد موتر سواری

19.دوازده موتر اطفائیه

20.دو هزار دستگاه خورد وکلان رادیو

21.آلات جراحی

22.موتر های زراعت«

په دې سفر کې د شوروي اتحاد له لینین نیولې، د ایټالیا تر موسولیني، د ترکیې تر مصطفی کمال اتاترک (د ترکي سیکولریزم پلار) او ایراني رضاشاه پورې له ټولو سره خبرې اترې لرلې، دي چې د کاندید اکاډمیسن محمد ابراهیم عطایي په قول له اتاترک او رضا شاه یې خورا اوږدې خبرې درلودلې.

**»اصلاحات« او د شاه تېښته!**

شاه امان الله له دې سفره د هېواد له لوېدیځه هرات ته راغی، نوموړي توقع درلوده چې ولس به یې پراخ هرکلی وکړي او دی به هم د سفر لاسته راوړنې ورته کتار کړي، خو شاه چې لا په سفر کې و، په کور دننه یې پر ضد څرګندونو زور واخیست، په تېره بیا د نوموړي د مېرمنې د لباس په تړاو؛ سره له دې چې له امان الله سره د تنفر په پیدا کولو کې د دربار د مخالفینو تر څنګ ښايي بهرني لاسونه هم و، خو د مؤثقو تاریخپوهانو په نظر پخپله د شاه بېړني فرمانونه او توندي د دې علت شوه چې ولس یې پر وړاندې ودرېږي.

د شاه له واکمنۍ نږدې سل کاله اوړي خو لا هم افغان ذهنیت په ګڼو هغو مسائلو کې چې شاه یوه پېړۍ وړاندې تطبیقول تیار نه دی، له دې زموږ مخکې یادونه هم ثابتېږي چې نوموړی د خپل ولس په پېژندنه کې په بله تللی و، بې له دې چې له اورده سفر وروسته په دربار کې غوښن شوي مخالفتونه حس کړي او بې له دې چې د هېواد وضعیت د نوموړي راوړیو «اصلاحاتو» ته برابر ووینې خورا په بېړه یې د «اصلاحاتو» تر نوم لاندې په حساسو مسائلو کې لاسونه ووهل.
کاندید اکاډمیسن محمد اعظم سیستانی لیکي: « امان الله خان د ۱۹۲۸م د جشن په پیلنۍ وینا کې د ځو ښځو کولو په اړه خبرې وکړي، ویې ویل: هیڅوک باید تر یوې ښځې ډېرې ښځې ونه لري، د هېواد د راتلونکې نیمکرغي په میندو پسې تړلې، چې نوی نسل روزي. امان الله خان ښځو ته په خطاب کې وویل: پاکې، عفیفې او په عصمت کې اوسئ او په دې برخه کې له خپلو مېړونو مه ډارېږئ. وروسته شاه او ملکه او نورالسراج چې چادري یې نه لرلې له استازیو سره خبرې وکړې، وروسته ملي اتڼ وشو، په دې محفل کې ډېرو ډیپلوماټو ښځو برخه اخیستې وه او یوې هندي نڅاګرې هندي نڅا وکړه. د اروپا له سفره چې را وګرځید، شاه د عالیرتبه مېرمنو یوه غونډه جوړه کړه او جذباتي وینا یې ورته وکړه، ویې ویل چادري د دې علت شوې چې ښځې تازه هوا نه شي تنفس کولی، ډېرې یې په ناجوړۍ اخته کړې دي، امان الله خان امر وکړ چې له دې وروسته د دارالامان په عمومي باغ کې چادري کړې ښځه نه شي ګرځېدلی«.

سره له دې چې ښاغلي شاه اغا صدیق مجددي پخپل اثر «امیر حبیب الله خادم دین رسول الله» کې د شاه اړوند داسې څرګندونې هم بیان کړې دي، چې په هماغه وخت کې عام ذهنیت هم تکرارولې، خو د دې تر څنګ وتلی مؤرخ ښاغلی سیستاني هم د شاه د «اصلاحاتو» په اړه تقریباً هماغه څه لیکي او ورسره تاییدوي یې هم:

»یوه ورځ امان الله خان په عمومي باغ کې یوه چادري کړې ښځه ولیده، دستي یې له ښځې وپوښتل چې له چادري سره دلته څه کوي؟ له ځنډ پرته یې له ښځې چادري کش کړه او ویې سوځوله، د شاه دا عمل په ښځه ښه ونه لګید او هغه یې

د ځان توهین وګاڼه په داسې حال کې چې د شاه هدف د ښځې توهین نه و، بلکې د چادري توهین و، چې خدایزده زموږ هېواد ته له کومه وخته راغلې او په موږ کې یې رېښې ځغلولې«.

هاغه موضوع چې په ولس کې یې د امان الله خان پر ضد د وسلې اخیستو انګیزه لا قوي کړه، ښاغلی سیستانی یې په اړه لیکي:»د غونډې په دریمه ورځ یوه بله ډېره ارزښتناکه موضوع مطرح شوه او هغه افغان مېرمنو ته د ازادۍ ورکول و، وروسته له هغه چې د ښځې او نر حقونه مساوي اعلان شول، ملکه ثریا له ځایه پورته شوه او پر خپل مخ راخور نازک پړونی یې له مخه کش او څېرې کړ، خلکو په چکچکو د هغې دا کار تایید کړ او نورو مېرمنو د هغې پیروي وکړه او سړیو د ښځو مخونه ولیدل، په داسې حال کې چې نه د ښځو له ښایست او عزت او نه هم د سړو له شرف او غیرت نه څه شی کم شول«.

د همدې سرچینې په وینا د شاه مېرمنې ملکې ثریا پخپل ښوونځي کې هم زده کوونکې دې ته هڅولې چې د چادري ضد تبلیغات وکړي، د دې تر څنګ دولت د ښځو د حقونو د لاسته راوړلو لپاره ان پر دوی د وسلو وېشلو نیت هم درلود:

»وروسته [امیر امان الله] ښځو ته توصیه وکړه چې له خپلو مېړونو خپل حقونه واخلي او هغه ښځې چې مېړونه یې ظلم او تاو تریخوالی پرې روا بولي، کولی شي خپل حق د توپانچې [چې دولت یې دوی ته ورکوي] په زور واخلي«.

ملکې ثریا د ښوونځي له زده کوونکو، وروسته یې په دلکشا ماڼۍ کې له مېرمنو سره ځانګړې غونډه درلوده او ویې ویل: اروپایي ښځې په فابریکو کارونه کوي، خو افغان مېرمنې له جسمي اړخه تر هغوی زورورې دي، خو د هېواد په پرمختګ کې برخه نه اخلي، علت یې چادري ده، چې په هیڅ ځای کې د قبول وړ نه ده.

هغې زړې مېرمنې د خلکو د کورونو د څار لپاره وګمارلې چې د مېړونو او مېرمنو چلند وګوري او دوی ته پټ ګوزارش ورکړي، چې له همدې امله هغې د ښځو د شکایتونو د اورېدو لپاره ځانګړې محکمه جوړه کړې وه، »دا ټول د امان الله خان په اصلاحي پلان کې شامل و«.

شاه د ښځو د تعدد په اړه خبرې وکړې، په عمومي توګه ټول ولس او په ځانګړي توګه یې د دولتي مامورینو لپاره تر یوې د ډېرو ښځو درلودل جرم وګاڼه، د دولتي کارکوونکو او د ښاري اوسېدونکو لپاره یې اروپایي لباس جبري کړ، چادري منع شوه او د ښار په واټونو کې لوحې ولګېدلې چې چادري کړې مېرمن دلته تګ راتګ نه‌شي کولی، د جمعې ورځ رخصتي پنجشنبې ته تبدیل شوه، سره له دې چې ګڼو

هندي ښوونکو په حبيبيه ليسه کې زده کوونکي روزل، خو ديوبند مدرسې ته د طالبانو تګ او له هغه ځايه د علماوو راتګ بند شو، په نظامي برخه کې چا د پيرۍ او مريدۍ سلسله کې ځان نه شوای داخلولی او پير يا مريد نظامي دستګاه ته نه شوی ور ننوتلی، شراب څښونکی نه‌شي مجازات کېدلی، مېرمنې به وېښتان لنډوي...

**شاه اغا صديق مجددي ليکي:**

»له [سفره] په بېرته راتګ سره، شاه چې له تازه نظرياتو سره هېواد ته راغلی و، په پوره جديت سره يې د خلکو د فرهنګي او ټولنيز وضعيت د بدلولو لپاره لستوڼي را بډ وهل او بې له دې چې د هېواد کورني شرايط په پام کې ونيسي، په بېړنيو او خطرناکو اقداماتو يې لاس پورې کړ او په اصطلاح تر قلبې وړاندې يې کرونده شروع کړه«!

له ديني طبقې سره فاصله پر شاه هغه باورونه لا پياوړي کړل چې نوموړی يې په افغانستان کې د مصطفی کمال اتاترک پر پيروۍ تورناوه، همدا خبره د هند پخواني لومړي وزير جواهر لعل نهرو هم په ترکيه کې د سيکولريزم د پلار اتاترک او شاه امان الله د مقايسې اړوند کوي:

»د هند لومړی وزير جواهر لعل نهرو اروپا ته د شاه امان الله د اورد سفر او د هغه پايلو په اړه ليکي: [... امان الله خطرناک کار کړی و، چې په هغو تودو بدلونونو کې چې په هېواد کې يې پيل کړي او د ژوند زړه تګلاره يې بدلوله، خپل هېواد پرېښود او په سفر لاړ. مصطفی کمال کله هم داسې خطرناک کار ونه کړ«.

کله چې شاه د «اصلاحاتو» په نوم ګامونه واخيستل، علامه اقبال لاهوري رحمه الله هم د امت د مسؤليت احساس وکړ او دا چې په پيل کې يې شاه ستايلی و، خو وروسته يې پرې غږ وکړ چې د (اروپا) ړوند تقليد دې بريا ته نه رسوي:

در نگر ای خسرو صاحب نظر
نيست هرسنگی که می تابد گهر
ای امان الله اگر داري جگر
در ضمير خويش و در قرآن نگر

دا او دې ته ورته ګڼ نور «اصلاحات» د دې علت شول چې د شاه مخالفين د اقدام کولو ګام واخلي، خو دا چې د شاه پر ضد اقدامات ځينې سرچينې ولسي تحرکات نه؛ بلکې د انګريزانو مداخله بولي خو لا يې هم نه په کورني او نه هم باندنيو سرچينو کې مؤثق اسناد موندل کېږي.

**په همدې تړاو وتلی مؤرخ مرحوم پوهاند حسن کاکړ وايي:**
»مخصوصاً په دغه شرقي قومونو کې یوه سلسله تحرکات روان و او د غبار په کتاب کې هم واضح دي، چې ډېرو ملايانو تحرکات کول اما دا چې سړی ووايي دغه خپله حکومت د انګلیسانو یعنې حکومت د هندوستان، دوی استولي لېږلي، دا ماته ثابته نه ده، معلومه نه ده او ممکن ده کړي يې وي، ممکن نه يې وي کړي؛ مګر داسې په رسمي ډول سره په دا اوراقو کې ماته داسې شواهد چې وښيي حکومت د انګلیس د اعلیحضرت امان الله خان په را چپه کولو کې سهم لري او اقدام يې کړی وي، ماته معلوم نه دي او باید دا وويل شي چې امير امان الله خان چې د سفر څخه را وګرځید، مخصوصاً په انګلستان کې هم حکومتي عمالو هم خلکو، د اعلیحضرت امان الله خان استقبال نظر هر بل مملکت ته زیات کړی و، اعلیحضرت امان الله خان هم د دوی د دغه ښه استقبال څخه نهایت مشکور و، حکومت هند برتانوي اساساً د اعلیحضرت امان الله خان د اصلاحاتو مخالف نه و یعنې واقعاً په دې باندې خوښ و، چې په افغانستان کې دغسې اصلاحات راشي، افغانستان چې له هغه پخواني ذهنیت سره ژوند کاوه او په نوې دنیا کې داخل شي، د دې اصلاحاتو هغوی مخالف نه و«.

**پخپله شاه هم د انګریزانو له هرکلي خوښ برېښي:**
»له جرمني انګلستان ته لاړم، ملت، حکومت او شاهي کورنۍ له ما سره سخت مینه وکړه، هلته دوه ويشت ورځې پاتې شوم ... ښه موړ شوم او ښه مینه مې ولیده ... له اکسفور دارالفنون او جرمني نه مې د حقوقو او انجینرۍ دوه دوکتوراوې قبولې کړې«...

یوازې یوه اندېښنه شته چې کله د شاه د «اصلاحاتو» پر ضد ولسي اقدامات پیل شول، نو مشهور انګریز جاسوس ټامس ایډورډ لارنس هم افغان پولو ته څېرمه لیدل شوی، خو نوموړي یوازې پنځه میاشتې تېرې کړې او بېرته د برتانیا حکومت ورغوښتی دی:

»لارنس د یوه عادي عسکر په بڼه کې لومړی کراچي او بیا د ۱۹۲۸ کال د اګست په میاشت کې د شمالي وزیرستان مرکز میران شاه ته ورسېدی. میران شاه له ډیورنډ کرښې شاوخوا لس میله لېرې پرته سیمه ده او نوموړی د څو میاشتو لپاره هلته د انګرېز پوځ په یوه مرکز کې مېشت و. پر دې مهال په افغانستان او هندوستان کې اوازه خپره شوه چې لارنس د امان الله خان د واکمنۍ د را پرځولو لپاره د خلکو د را پارولو په نیت سیمې ته رسېدلی دی. دغه ګنګوسې چې خورې سوې نو د برتانیا حکومت لارنس لندن ته وغوښتی.

لارنس په قبايلي سيمو کې تر شاوخوا پنځه مياشتې اوسېدو وروسته د ۱۹۲۹م کال د جنوري په مياشت کې بېرته خپل هېواد ته ستون شو«.
کانديد اکاډميسن محمد اعظم سيستانی د پوهاند حبيبي په حواله ليکي: »د افغانستان په معاصر تاريخ کې په وارو وارو ليدل شوي، چې شاه، زمامدار يا شهزاده ښه سړی وي، خو د درباريانو د بدو کړنو، د حرم د نااهله ټاکل شويو کسانو او کورنۍ له لوري سرکوب شوی وي«.

همدا سرچينه د مير غلام محمد غبار په حواله ليکي، چې نوموړی هم ورته نظر لري، خو په دومره توپير چې د شاه شخصي نيمګړتياوې هم پکې دخيلي بولي:

»شاه يوازې پاتې و، کوم با کفايته ګوند يا ملګري يې نه لرل ... د اروپا له سفر وروسته ډېر مغرور او ځان غوارۍ و شوی و، په بېړنيو اقداماتو يې افغانستان د يو منفي انفلاق وړ کړ«.

کانديد اکاډميسن محمد ابراهيم عطايي وايي چې شاه امان الله د واکمنۍ له پيله ځان تر قانون پورته ګڼلی و: »ده په قانون کې پاچا بې مسؤليته کړی و، خو صدر اعظم چې د کارونو مسؤل و، هغه يې نه مقرراوه او پخپله يې ټولې چارې اجرا کولې، وزيران چې ده ته مسؤل و، دی هيچاته مسؤل نه و، په دې توګه يوه انارشي اداره کې روانه وه، په يوه لويه جرګه کې د ده د تقنيني مشاور مولوي عبدالواسع د داخله او معارف له وزيرانو څخه د خلکو د شکايت غږ وکړ، په دغه وخت پاچا په عصبيت ځواب ورکړ، چې دا زما وزيران دي ماته مسؤل دي، په بل چا پورې اړه نه لري«.

د دې تر څنګ له خپلو »اصلاحاتو« د شاه بېړنی شاتګ هغه څه بلل کېږي چې د نوموړي پښې يې سستې کړې، هغه د واک په وروستيو کې د ښځو او روحانيونو په برخه کې ډېری خپل فرامين بېرته ور واخيستل او د دې لپاره چې ځان ثابت کړي چې تېر »اصلاحات« يې شاته غورځولي، د ملکې ثريا په وجود کې يې د خپل تره نصر الله خان له لور عليا بېګم سره هم واده وکړ، خو اوبه تر ورخ تېرې وې.

په ټوله کې مؤرخين د شاه بېړني اقدامات، د خپلې ټولنې نه پېژندنه، له روحانيونو او علماوو سره ناسم چلند، د اروپا پټې سترګې تقليد ... د دې علت بولي چې شاه نور د سقوط پر ژۍ ولاړ و، که کوم بهرنی لاس موجود وګڼل شي کنه، خو په کور دننه دومره عوامل را ټول شوي و، چې شاه يې تخت پرېښودو ته اړ کړ؛ بالاخره شاه امان الله له شاوخوا لس کلنې واکمنۍ وروسته، له واکه لاس پر سر او خپل

ورور عنایت الله خان یې واکمن اعلان کړ، خو حبیب الله کلکاني مرکز نیولی او د پاچاهۍ اعلان یې وکړ.

**اخیستنځي:**

•ارغنداوي، ډاکټر عبدالعلي، ژوندۍ خاطرې

•سیستانی، کاندید اکادمیسن محمد اعظم، علامه محمود طرزی، شاه امان الله و روحانیت متنفذ، ۱۳۸۳ه

•عطایي، کاندید اکاډمیسن، محمد ابراهیم، د افغانستان پر معاصر تاریخ یوه لنډه کتنه، دویم چاپ، ۱۳۸۳ه، اسد

•غبار، میر غلام محمد، افغانستان در مسیر تاریخ، چاپ دوم، ۱۳۵۹ه، اسد

•فرهنګ، میر محمد صدیق، افغانستان در پنج قرن اخر، چاپ دوم، ۱۳۸۰ه

•مجددی، شاه اغا صدیق، امیر حبیب الله خادم دین رسول الله، چاپ چهارم، ۱۳۸۱ه

•اعظمي، ډاکټر داود، بي بي سي – مقاله: «د امان الله خان د واکمنۍ او جلاوطنۍ په اړه نوي څېړنې او موندنې«